نبوي مرغلري

رسول الله (ص) فرمايلي دي:

ژباړه: د خلکو څخه ډېر غوره هغه څوک دی، چې اوږد ژوند ولري او نېک عمل کوي.

«صحیح الجامع»

# طلوع افغان

غوره وينا

امام غزالي "رحمه الله":

پر دې کلک باور ولره، چې الله جل جلاله تـه غځـېدلي لاس، هيڅکلـه تش نه راګرځي!

د امتياز څښتن:

د کندهار اطلاعات او فرهنګ رياست

مؤسس: مولوي صالح محمد "هوتک"

په اوونۍ کې دوه واره چاپېږي

د تأسيس کال: ۱۳۰۰ لمريز، يکشنبه ۱۷/شعبان المعظم/۱۴۴۶ هـ ق، ۲۸/سلواغه/۱۴۰۳ ل کال - ګڼه (۷۰)

Sunday-16-February-2025 Issue: 70


## عاليقدر امير المؤمنين حفظه الله: اسلامي امارت د علم پر مختګ له پاره ټولي اسانتياوي برابري کړي دي

عاليقدر اميرالمؤمنين حفظه الله د چهارشنبې پـه ورځ د کنـدهار پوهنتـون څخـه د لـيدنـي پر ترڅنګ، د ياد پوهنتون رهبري، استادانو، کارکوونکو او محصلانو ته په يوه لويه غونډه کې وينا وکړه.

عاليقدر اميرالمؤمنين حفظه الله تعالی په پيل کې د علم پر ارزښت او د ديني او عصري زده کړو د اهميت پـه اړه خبـري وکـړې، استادانو او محصلانو ته يې لارښوونه وکړه، چې دواړه علوم په اخلاص سره زده کړئ، خپل نيت يوازې د الله تعالی د رضا له پاره وساتئ او د خپل علم په مرسته، ديـن او خلکـو تـه ګټـه ورسـوئ.

عاليقدر اميرالمؤمنين حفظه الله همدارنګه زياته کړه، له تاسو مې غوښتنه ده، چې د خپل هيـواد د شـهيدانو، مبـارزينو او قهرمانـانو تاريخونه ولیکئ او په نړۍ واله کچه يې معرفي کړئ، ځکه مجاهدينو په سختو حالاتو کې د الله تعالی په نصرت سره دا هيواد آزاد کړ او ۴مخ

## د سلواغې ۲۶مه: د افغانستان اسلامي امارت اعلاميه!

د سـلواغې ۲۶مـه د افغانسـتان څخـه د پخـواني شـوروي اتحاد، د سرو لښکرو د ماتي او وتلو ۳۶مه کاليزه ده.

امارت دغه ورځ د افغانستان په تاريخ کې، يوه له وياړه ډکه او د الله جل جلاله د شکر ورځ ګڼي او په مناسبت يې خپلو د افغانستان اسـلامي مسلمانو او مجاهدينو ورونو ته مبارکي وايي. ۴مخ

## د کډوالو ښار ګوټي خط اندازي چاري ۵۰ سلنه بشپړي سوي

د کندهار ولايت په دامان ولسوالۍ کې د کډوالو د ښار ګوټي د دوهمي برخـي خـط انـدازي ۵۰ سـلنه بشپړه سوې ده.

د کډوالو او بيرته راستـنېدونکو چارو رياست اړوند، د کډوالو چارو امـير مفتـي نعمـت الله الفـت د پنجشنبې په ورځ باختر خبري ۴مخ

## د اوبو يو بند جوړ او ګټې اخيستني ته سپارل سوی دی

د کندهار ولايت پـه ارغـستان ولسـوالۍ کـې د اوبو يو بند جـوړ او ګـټـې اخيسـتني تـه وسپارل سو.

د اوبو ياد بنـد د کرهـني، اوبـو لګولو او مالدارۍ وزارت پـه پراختيايي بودجه، د ارغستان ولسوالۍ په سردرې کلي کې د ۳،۴ ميليونو افغانيو په لګښت، د درو مياشتو پـه مـوده کـې جوړ او ګټې اخيسـتنې تـه وسپارل سو. ۴مخ

## ۱۳ مهاجري کورنۍ له پاکستانه خپل هيواد ته راستني سوې

۲۵ تنـه بنـدي مهـاجر خپـل هيواد ته راستانه سوي دي.

د بل خبر له مخي د کندهار ولايت د تخته پـل ولسـوالۍ اړونـد، پـه انګرګۍ کمپ کې د کډوالو

د کندهار ولايت د تخته پل ولسوالۍ اړوند، په انګرګۍ کمپ کې، د کډوالو د ثبت او تثبيت کميټې مسؤلينو باختر خبري آژانس تـه ويلي، د چهارشنبې په ورځ څلور کورنۍ چې د کسانو شمېر يې ۲۳ تنه کېدی او ۴مخ

## زرونه کېلو ګرامه نشه يي توکي او شکمن کسان نيول سوي

په کندهار ښار او ولسواليو کې زرونه کېلو ګرامه نشه يي توکي او په تراو يې ۱۷ تنه شکمن کسان نيول سوي دي.

د کنـدهار ولايت د امنيـي قومانـدانۍ ويانـد مـلا اسدالله جمشيد د سه شنبې په ورځ باختر آژانس ته ويلـي، امنيتـي ځواکونو د تېرې يوې اوونـۍ پـه جريان کې د ښار په مختلفو حوزو او ولسواليو کـې زرونه کېلو ګرامه نشـه يـي تـوکي نيولي دي.

په يادو نشه يي تـوکو کـې ۴مخ

## د "ځوانانو مسؤليتونه" په نوم سيمينار جوړ سو

د کندهار پـه اطلاعات او فرهنګ رياست کې، د شريعت په رڼا کې د "ځوانانو مسـؤليتونه" پـه نـوم سيمينار جوړ سو.

د اطلاعـات او فرهنـګ رياسـت اړوند، د ځوانانو چارو آمريت له لـوري، د شـريعت پـه رڼـا کـې د "ځوانانو مسؤليتونه" په نامه يو ورځنی سيمينار تر سره سو، چې استاد نعمت الله شاکر په کبني ۴مخ



طلوع افغان خبري (سرليکنه)

هندي سينما؛

## که د هندو مذهب او کلتور د تبليغ وسيله؟!

د يو هندي فلم کيسه داسي ده، چې د فلم هلک، ډېر زرور او خورا پاپلوچه کس وي، د ناقانونه سوداګرۍ يعني قاچاق لـه لارې يې پر بمانه پيسې پيدا کړي وي، دونه زورور او مغرور وي، چې د هند سيمه ييز حکومتي چارواکي يې لا پـه پيسو رانيولي وي، د ده د قاچاق مخه نيول، د هندوستان د حکومت تر وس وتلي خبره وي، خـو د دومره غرور او زور سر بېره، دا سړی د هندوستـان پـه يو مـذهبي جشن کې د ښځو کـالي (ساړي) اغوندي، بنګړي په لاسوي، خپل مخ پـه مختلفـو رنګونو لړي، رقص کوي او د بت په پښو کي ځان ور غورځوي، داور پر سکروټو قدمونه ږدي، د بت په وړاندي پر ږوزي او سره رغړي.

دلته هدف څه دی؟ په فلم کي يو سړی دومره قوي او مغرور را پېژندل کېږي، بيا وروسته پـه همدغـه سړي د ښځو کـالي اغوندي، رقص په کوي او پر مځکه يې سره رغړوي. هدف دادی، چې دا جشن د هندي مذهب او کلتور يوه برخه ده، يو مذهبي جشـن دی، د فلم لـه لارې ځوانانو تـه دا ور ښـوول کېږي، چي هر څومره قوي سړی سي، خـو خپـل مـذهب او کلتور ته بايد ژمن و اوسي.

هغوی سينما، خپل مذهب او فرهنګ ته، د تبليغ يوه ډېره قوي وسيله بللي ده او لـه دې وسـيلي يـې د خپـل هيـواد، فرهنګ، مذهب او اقتصاد له پاره دومره کار کړی، چي ښايي مور يې تصور لا نه وي کړی.

هندي سينما د هند نڅا، سندرې، خواړه، جامې، آدبونه، تاريخي ځايونه، مذهب او خپل پرمختګونه پـه ټولـه نړۍ ليدلي او پېژندلي دي.

هندي سينما د پوځ، استخباراتو، پوليسو اړوند داسي فلمونه توليد کړي او توليدوي، چې د خپل هيواد ځوانان تشويق سي، چې په پوځ، استخباراتو او پوليسو کي دندي واخلي.

هندي سينما د تعليم، زيارکښۍ، ژوند جوړوني، مسلکيتوب او تخصص په اړه، داسي فلمونه وړاندي کړي، چې ځوانان تشويقوي، نوي هيلي ورکوي او عزم يې ور قوي کوي.

هندي سينما د دوی کلتوري ښځينه لباس (ساړي) دومره مشهوره کړې، چې د نړۍ زياتو هيوادونو تـه يې صادروي، همداسي يې نور توکي هم حساب کړئ.

هندي سينما د نړۍ په تقريبًا ټولو هيوادونو کې مينه وال لري، خلک يې فلمونه ګوري، آن لـه بخيلو چينايانو پـه ميليونونو ډالر عايد تر لاسه کوي.

هنديانو د خپلي سينما په مرسته، دوی ګټې کړي، يوه دا چي خپل اقتصاد يې ور باندي غښتلی کړی، بله دا چي خپل مذهب او کلتور ته يې پراخ کمپاين او تبليغات کړي دي. اداره

## بېلابېل موضوعات

# د عاشقۍ ورځ

حسان "مجاهد"

ابن عباس، ضحاک، حسن بصري، مجاهد او عطاء رضی الله عنهم د (وَلا مُتَّخِذَاتِ أَخْدَانٍ) د سورة النساء د ۲۵ آیت په تفسیر کي وايي:

«له هغو ښځو سره نکاح وکړئ چي د پټ یار او انډیوال نیوونکې نه وي!»

کله چي کفارو پر افغانستان یرغل وکړ، نو افغانانو ته يې د فیمینیزم (د ښځوآزادي) نظریه هم را وارده کړه او دا نظریه د فکري جګړې د مهمو موخو څخه شمېرل کېږي، دوی افغانانو ته دا تبلیغات کاوه، چي که افغانان هم د اروپايي هیوادونو په څېر، پرمختګ غواړي، نو ښځو ته دي داسي آزادي ورکړي، لکه په اروپا کي چي ترویج ده، هلته د ښځو له پاره (boy friend هلک انډیوالي) او د نارینه وو له پاره (girl friend نجلۍ انډیوالي) ته پوره اجازه ورکړل سوې ده.

هر څوک له قیده پرته، مینه او عاشقي پر مخ وړلای سي، چي بدبختانه زموږ اکثر مسلمانان د همدې زهرجني پدیدې ښکار سوي دي، د پردي هلک او نجلۍ ترمنځ مینه او اړیکي ساتل روا ګڼي او د عاشقۍ ورځ هم د نورو ورځو په څېر، لمانځي، یو او بل ته تحفې لېږي، په رسنیو کي د خپل یار/یاري انځورونه خپروي او د میني ښکارندويي کوي.

د غیر مشروع میني او عاشقۍ په پراختیا کي تر ډېره حده د هندي سریالونو او افسانوي ناولونو لاس دی چي په دې وروستیو کي ډېر عام سوي او مینه وال يې مخ پر زیاتېدو دي.

په رومانتیک هندي سریالونو او فلمونو کي پردی ځوان او پردۍ نجلۍ، یو له بله غاړه په غاړه ګرځي، په ګډه نڅا کوي، یو او بل ته د میني خبري کوي، یو او بل ته زړه راکښونکي حرکتونه او اشارې کوي، د یو او بل په نه شتون کي د ژور خپګان احساس کوي چي د دې هر څه کتل، زموږ مسلمانو ځوانانو او نجونو ته ناروا مینه او اړیکي او مجازي عشق ور زده کوي، چي په نتیجه کي يې اخلاقي فساد، زناوي، بدکارۍ، ځان وژني، کورني اختلافونه او د ژوند له هدفه پاته کېدل رامنځته کېږي.

د شریعت مهم اصل دادی، چي (اسباب الحرام حرام) یعني ټول هغه کارونه چي په واسطه يې د حرامو دروازه خلاصېږي، حرام دي.

# عصبیت

ژباړه: سمیع الله "دراني"

عصبیت دې ته ویل کېږي، چي انسان ځان له یو چا سره وتړي، یا ځان ورته منسوبوي. یا ځان پسي مربوطوي. دا هم یوه فطري جذبه ده، ځکه هر انسان ځان یو قوم، یوې قبیلې، یو ښار، یو ملک، یو مذهب ته منسوبوي. بیا د هغه تر چتر لاندي خدمت کوي. د دې عصبیت په وجه ابن خلدون وايي: د قومونو تشکیل جوړ سوی دی. دغه عصبیت الله تعالی هم قبول کړی دی، ځکه چي الله جل جلاله د قرآنکریم د سورة الحجرات په (۱۳) نمبر آیت کي فرمايي:
ژباړه: اې خلکو! موږ تاسو له یو نارینه او یوې ښځي څخه پیداکړي او بیا مو تاسي قومونه او قبیلې ګرځولي، ترڅو چي تاسو له یو او بل سره وپېژنی.

د عصبیت دغه جذبه چي په خپل حد کي وي، خو د ژوند اصول ور سره سمېږي، خو چي تر حد واوړي، بیا مشکلات زېږوي، ځکه ډېر خلک تاسو ویني، چي په خپل نسب باندي فخر کوي. نور قومونه تحقیروي، تعصب کوي، له نورو قومونو سره نکاح لا نه کوي، خو دا يې هېره کړې ده، چي په اسلام کي دې ته هیڅ اهمیت نه ورکول کېږي.

په اسلام کي تقوا مهمه ده، ځکه نبي کریم صلی الله علیه وسلم خپلې لوڼي غیر ساداتو ته په نکاح کړي، حسن او حسین رضي الله عنهم هم د علم او تقوا په خاطر، د خپلو اولادونو نکاحوي په ساداتو او غیر ساداتو کي وتړلې.

په اسلام کي هیڅ نسب ته پر بل نسب باندي فضیلت نسته.

ځیني خلک په دې فخر کوي، چي زموږ پلار او نیکه بزرګان خلک وو. نو په دې کي ستا څه کمال دی، خو هغوی به بزرګان وو؟

ځیني خلک بیا نور خلک په دې رټي، چي د دوی پلار او نیکه بد خلک وو. نو د هغوی په بدۍ کي د ده څه قصور دی؟ د دې آیت مطلب دادی، چي دغه قومي تشکیلونه صرف د تعارف له پاره دي، نه د فخر له پاره.

بې له نسبه زموږ په ټولنه کي خلک دغه کسب کاره خلک یا چي مزدوري کوي، حقیر ګڼي، خو په عربو کي دا رواج دی، چي میلیونران عرب د خپل پلار او نیکه کسب، هغه که خیاطي وي، یا بل کسب وي، په شوق يې کوي.

فخر هم په کوي، هیڅوک پېغور نه ورکوي او محنت، مزدورۍ کولو والا نبي کریم صلی الله علیه وسلم د الله جل جلاله دوست بللی دئ.

بل زموږ په مملکت کي دغه وطني او ژبني تعصب ډېر دی. هر ولایت والا په هغه بل ولایت والا پسخندونه وهي. پښتانه په فارسي ژبانانو پسخند وهي، فارسي ژبانان د ژبني تعصب په وجه، د پښتنو د وینو تږي دي. د دې تعصب پایله ښه نه را وځي. تاوان اسلام ته هم رسېږي او مملکت ته هم. مملکت د تجزیې ښکار ګرځي. اسلامي اخوت ته تاوان کوي.

په نړۍ کي دوه نړۍوال جنګونه سوي دي، د مملکتي تعصب په وجه چي په میلیونونو انسانان په کښي وژل سوي دي. دا تعصب د کښته شخصیت او کمزوري انسانانو نښه ده، چي وطني، ژبني او سمتي تعصب کوي.

بې له دې یو مذهبي تعصب دی، چي اوس خلک په کښي ښکېل دي. مثلاً: یهود د مذهبي تعصب په وجه له غیر یهودو سره هر ډول ظلم روا ګڼي او په اوسنۍ ټولنه کي زموږ مسلمانان هم د دې کمزورۍ ښکار ګرځېدلي دي، چي خپله به يې لمونځ او اودس لا نه وي زده، خو دی به هم پر نورو مذهبو والا د کفر ټاپې وهي. دی به محض په دې مغرور وي، چي زه په مسلمانه کورنۍ کي زېږېدلی یم. دغه تعصب په مسلمانانو کي ډېر دی، خصوصاً په فرقو کي.

هره فرقه والا پر بله فرقه د وهابیت، پنج پیریت، بریلویت ټاپې لګوي، خو الله تعالی ټولي ډلي سره جلا کړي دي. صرف دوې ډلي دي: یو حزب الله ده، بله حزب الشیطان ده. موږ که چیري ښه انسان او ښه مسلمان جوړېدل غواړو، نو باید له ځانه د عصبیت کمزوري وباسو، چي بیا زموږ شخصیت ته زیان نه ورسېږي.

# مستقیم د جنت پر لور!

لیکوال: اسامه سلېمان

ژباړه: محمدنعیم "پرهېز"

آیا پوهېږئ؟ چي د قیامت په ورځ به یوه ډله خلک د قبرونو څخه له راپورته کېدو سره سم، د حساب او کتاب پرته، مستقیم جنت ته ځي؟ آن د قیامت د ورځي په سختۍ بېري به هم نه پوهېږي!

د قیامت په ورځ به یوه ډله خلک له خپلو قبرونو راپورته سي او مستقیم به د جنت پر لور روان وي، د جنت دروازه بان سیدنا رضوان به هغوی ته په خطاب کي داسې ووايي: چیري ځئ؟! تاسو ته عمل نامې نه دي درکړل سوي، تراوسه مو عملونه نه دي تلل سوي، څرنګه جنت ته دننه کېږئ؟!

دوی به يې په جواب کي ووايي: اې رضوانه! موږ د مېزان (تلې) حساب او کتاب ته صبر نه کوو، تا قرآنکریم نه دی ویلی؟

سیدنا رضوان به ورته ووايي: د قرآنکریم کومه برخه ولولم؟

ورته وبه وايي: الله جل جلاله د قرآنکریم د سورة الزمر سورة په (۱۰) نمبر آیت کي فرمايي:

ژباړه: صابران به خپل بې حسابه اجر او بدله ترلاسه کړي.

سید رضوان به ځني وپوښتي، تاسو څه ډول صبر کړی و؟

په جواب کي به يې ووايي: موږ داسي ژوند کاوه چي کله به موږ ته غم او خپکان رسېدی، تحمل به مو کاوه، که ګناه به مو کوله، له الله تعالی به مو بخښنه غوښته، خو کله به چي په امتحان او ابتلا کي واقع کېدو، بیا مو هم صبر کاوه او کله به چي موږ ته نعمت رسېدی، د الله تعالی شکر به مو ادا کاوه.

الله تعالی موږ ته د قرآنکریم د سورة الاعراف په (۴۹) نمبر آیت کي داسي فرمایلي دي:

ژباړه: ننوځئ جنت ته، نه به دربانديې بېره وي او نه کړاو.

# نېک عمل له بنده سره د الله تعالی د محبت نښه ده

مولوي نورالحق "مظهري"

ژباړه: د حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: کله چي الله پاک د یو بنده له پاره خیر وغواړي، نو هغه استعمالوي.

یو چا وویل: څنګه يې استعمالوي یارسول الله؟

رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: هغه ته تر مرګ مخکي د نېک عمل توفیق ورکوي.

الله پاک دي راته تر مرګ مخکي، د نېکو عملونو د کولو توفیق راکړي او خاتمه دي مو الله تعالی په خیر کړي.

# ښاغلو مجردانو!

سیداکرام "سعیدي"

که غواړئ په تدبیر او حکمت سره له مجردۍ خلاص سئ، نو لاندنۍ لیکنه ولولئ!

اسماء بن خارجه الفزاري ډېر جواد (سخي) انسان و. روایت دی چي یوه ورځ يې د دروازې ترڅنګ، یو ځوان ناست و. له ځوانه يې وپوښتل: د څه له پاره ناست يې؟

ځوان وویل: یو حاجت لرم، خو پر خوله مي نه راځي. د هغه تر ډېر ټینګار وروسته، ځوان وویل: ستا کور ته یوه پېغله مینځه ننوتله، ما په ټول عمر کي داسي ښکلې پېغله نه وه لیدلې، هغې زما زړه هم له ځانه سره یووړی.

ځوان يې تر ګوتي ونیوی، کور ته يې دننه کړ، ټولي مینځې يې ورته وښوولې، ځوان پر هغې مینځې ګوته کښېښووه، ویل: دا هغه ده. ځوان ته يې وویل: ښه اوس ولاړ سه او بیرته هلته انتظار وباسه. ځوان پر خپل ځای ناست و چي لږ شېبه وروسته مینځه د ناوي په جامه کي ورته حاضره سوه.

اسماء بن خارجه ورته وویل: ما په کور کي هم تا ته سپارلای سوای، خو دا مي د خور مینځه ده، هغه پرې ډېره بخیله وه، په درې زره درهم مي ځني واخیستله، اوس نو دا ستا ده.

البدایة والنهایة

زموږ په ټولنه کي ډېر مجردان پټي میني کوي، پر ټیلیفون خبري کوي، غمجن شعرونه اوري او نښي له ځان سره ساتي، زه وایم عملي هڅي باید وکړي، ممکن د مجردۍ موده يې لنډه سي.

# د شیطان لښکر

خوښونه: شهید شیخ رحیم الله "حقاني"

(۱۰۷) برخه

## د خوارجو نوې څېره (داعش)

د دوی عقاید او نظریات:

دوی دوې لویې عقیدې لري:

لومړۍ عقیده:

د دوی په اند د امیر اړتیا نسته، که اړتیا پېښه هم سي، نو ضروري نه ده چې قریشي او آزاد سړی دي امیر سي، بلکي غلام او عجمي هم امیر المؤمنین جوړېدلای سي.

دوهمه عقیده:

دوی وایي: انسان حَکَم یعني درېمګړی نه سي جوړېدای او سیدنا علي رضي الله عنه په دې مسئله کي تېروتی و، ځکه چې هغه خلک درېمګړي ګرځولي وو، سره د دې چې فیصله یوازي د الله تعالی ده، د دوی دا خبره د قرآن کریم له صریح آیت سره په ټکر کي ده:

ژباړه: که تاسو د ښځي او مېړه ترمنځ د جګړې بېره لرئ، نو یو درېمګړی د خاوند له کورنۍ او یو درېمګړی د ښځي له کورنۍ ولېږئ، که دوی دواړه سوله وغواړي، نو الله تعالی به د دوی په منځ کي اتفاق پیدا کړي، بې شکه الله تعالی ښه علم او خبردار ذات دی.

دوهمه ډله: الازارقة:

دا ډله د خپل مشر ابو راشد نافع بن الازرق طرف ته منسوبه ده، دا هغه خوارج دي چې د عبدالله بن الزبیر د خلافت پر مهال، د بصرې څخه د نافع بن الازرق سره اهواز ته ولاړله، په دې سیمه او وروسته یې د فارس په کرمان سیمه باندي ولکه واچوله او په دې سیمو کي یې د عبدالله بن الزبیر والیان شهیدان کړل.

د الازارقة عقائد:

لومړۍ عقیده:

د دوی په اند عثمان، علي، طلحه، زبیر، عائشه، عبدالله بن عباس رضي الله عنهم او د دوی ملګري کافر او آبدي جهنمیان دي. العیاذ بالله

دوهمه عقیده:

له جنګه ناست خلک او څوک چې د دوی لوري ته هجرت نه کوي، هغه ټول کافران دي، باید له هغوی څخه برائت او بېزار دي وسي، که څه هم په ځیني دین له دوی سره موافق وي.

درېیمه عقیده:

د مخالفینو ماشومان او ښځي وژل روا دي.

څلورمه عقیده:

رجم ځکه نسته چې په قرآن کي رجم نسته، پر پاک سړي باندي د زنا تور لګولو سره حد قذف نسته، خو په پاکه ښځه باندي د تهمت لګولو حد سته.

پنځمه عقیده:

د کفارو بچیان به له خپلو پلرونو سره یو ځای دوزخ ته ځي.

شپږمه عقیده:

تقیه (داسي کار یا وینا چې عقیده یې نه وي، خو د دښمن څخه د ځان ژغورل مقصد وي) نه قولاً او نه عملاً روا ده.

اوومه عقیده:

امکان لري چې پیغمبر تر بعثت مخکي یا وروسته کافر سي.

اتمه عقیده:

د کبیره ګناه کوونکی کافر او په مکمله توګه له اسلامه وتلی دی، له نورو کفارو سره د تل له پاره په دوزخ کي وي.

درېیمه ډله: النجدات (العاذریة)

دا د بنو حنیفه قبیلې د نجده بن عامر یا ابن عاصم ملګري دي. عاذریه ورته ځکه وایي چې دوی په فرعي احکامو کي د جهل او ناپوهۍ له امله یو سړی معذور ګڼي، د دوی وینا ده: په دین کي دوې مسئلې دي:

لومړۍ مسئله: د الله تعالی او د هغه رسول پېژندل او پر هغوی باندي د ایمان لرونکو مسلمانانو وینه تویول، حرام بلل او هغه احکام چې د الله تعالی له لوري څخه راغلي دي، پر دې ټولو شیانو باندي اجمالي اقرار کول، پر هر چا واجب دی او جهل په دې کي هیڅ عذر نه دی.

دوهمه مسئله: له دې پرته په نور حلال او حرام کي خلک معذور دي، ترڅو چې مکمل وضاحت ورته نه وي راغلی.

نجده بن عامر د ذمیانو وینه تویول، د تقیه په وخت کي روا ګڼي، یعني که یو ظالم کوم مسلمان د یو ذمي قتل ته مجبور کړي، نو د هغه وژل د مسلمان له پاره روا دي.

دوی وایي: که زموږ ملګرو ګناه کبیره وکړه، نو شاید چې الله تعالی یې وبخښي او که عذاب هم ورکړي، نو د جهنم پرته به عذاب ورکول کېږي او بیا به جنت ته داخل کړل سي. (سبحان الله! دا د یهودو نظریه ده چې وایي:

ژباړه: یهود وایي: هیڅکله به موږ ته اور و نه رسېږي، مګر په شمار څو ورځي)

دوی وایي: په کوچنیو ګناهونو باندي اصرار کول، کفر نه دی او لویه ګناه له اصرار پرته کفر نه ده (یوازي په لویو ګناهونو سره دوی د کفر فتوا نه لګوي، ترڅو چې دوام او اصرار ورسره نه وي.)

نور بیا...

# انترکس (Anthrax)

محمد سلیم "امیري"

انترکس (Anthrax) یوه خطرناکه باکتریایي ناروغي ده چې د باسیلس انتراسیس (Bacillus anthracis) له امله منځ ته راځي، په انسانانو او حیواناتو کي جدي ستونزي رامنځته کولای سي. په مالدارۍ کي، دا ناروغي عموماً په غواوو، پسونو، وزو او نورو څارویو کي لیدل کېږي.

په مالدارۍ کي د انترکس علامې:

دغه علامې دوې جنبې لري: یوه په حیواناتو او بل په انسانانو کي.

حیواني علامې:

۱- ناڅاپي مرګ: ناروغي ډېری وخت ناڅاپي او له مخکنیو څرګندو علامو پرته، د څارویو مړینه رامنځته کوي.

۲- د وینې بهېدنه: له خولې، پزې، غوږونو او مقعدې د تور رنګه یا سرو وینې بهېدل، د ناروغۍ نښې دي.

۳- د بدن پړسوب: په ځانګړې توګه؛ د غاړې، سینې او خېټې په شاوخوا کي پړسوب رامنځته کېږي.

۴- د تودوخې لوړېدل: ناروغ څاروي معمولاً ډېره لوړه تبه لري.

۵- کمزوري او فلج: څاروي ډېر ژر کمزوري کېږي او د حرکت توان له لاسه ورکوي.

۶- نفس تنګي: ستونزمن تنفس او په سینه کي درانه ږغونه هم ممکن وي.

د ناروغۍ خپرېدل:

انترکس د ککړې مځکي، خوراک، اوبو یا د ناروغ څاروي، د تماس له لارې خپرېږي.

د انترکس سپورونه په مځکه کي کلونه ژوند کولای سي او د ناروغۍ د خپرېدو اصلي لامل ګرځي.

د مخنیوي تدابیر:

۱- د څارویو واکسین کول: د انترکس له پاره ځانګړی واکسین شتون لري چې څاروي باید پر وخت واکسین سي.

۲- د مړو سوو څارویو سم مدیریت: د مړو سوو څارویو جسد باید په ژوره خاوره کي ښخ (پټ) یا وسوځول سي.

۳- د ککړو ساحو پاکوالی: د ناروغۍ سیمي باید له منځه یووړل سي او غیر فعالي سي.

که ستاسو په څارویو کي د انترکس شک وي، ژر تر ژره وترنر ته مراجعه وکړئ، ځکه چې دا ناروغي انسانانو ته هم انتقالېدلای سي.

## پنځه ډېري مهمي خبري

مفتي حکیم الله "صابر"

۱- کله چې د الله تعالی څخه لیري سې او د خلکو خوښي غواړې، هماغه خلک به دي وځورويي.

۲- هر هغه پیل چې د الله تعالی ناخوښ وي، پایله به یې هم د خوښۍ وړ نه وي.

۳- د هغه ځایه به صدمه در ورسېږي او مات به سې، د کوم ځای څخه چې دي د الله تعالی نافرماني کړې وي.

۴- د هر هغه محفل او ملګري څخه ځان لیري وساته! چې ستا دین، اخلاقو او ذهن ته زیان رسوي.

۵- د شپې الله تعالی ته ژاړه او خپل غم ور سره شریکوه! سهار خلکو ته له پوره قوت سره راوځه.

## هر مامور خپله ټاکلې دنده لري

احمد الله "ذکي"

کله چې رئیس په خپلو مامورینو او کارمندانو چوکاټ او سلسه مراتب وپېژني، بیا به هیڅکله د مراجعینو کار په ځنډ کي واقع نه سي، هم به مراجعین خوشحاله وي او هم به خپل منځي مداخلې بندي سي.

هر مامور خپله ټاکلې دنده لري او د هغې دندي اړوند، روښانه چوکاټ سته، هر څه په کښي روښانه دي، مسئولیت او صلاحیت یې له ورایه ناري وروهي.

خپل مسئولیت او صلاحیت وپېژنه!

## ۶۰ تنو معیوبینو ته د بایسکلونو توزیع وسوه

د افغاني سرې میاشتي د جنوب زون ریاست ویاند محمد شعیب آغا

د افغاني سرې میاشتي ټولنه
جمعیت هلال احمر افغانی

د دوشنبې په ورځ باختر خبري آژانس ته ویلي، د قطر هیواد د سرې میاشتي (هلال احمر القطري) له لوري د افغاني سرې میاشتي د جنوب لوېدیځ زون له ریاست سره ۶۰ ویلچر د معیوبینو د بایسکلونو مرسته وسوه.

یاده مرسته د مسئولینو له لوري هغو مستحقو کسانو ته ورکړه سوه چې د فزیکي محدودیتونو له امله یې له تګ او راتګ سره ستونزي درلودې.

## شعر او آدب

# د طلوع زرینې وړانګې

### غزل

عصمت الله "څاروان"

دومره په بېړه لکه تېر له کمان تېښته کوي
حق چې غالب سي د باطل پیروان تېښته کوي

سوځېږي اور پرې بلوي تم کېدای نه سي ورته
له مبارک آذانه تل شیطانان تېښته کوي

د زړه انګړ کي دي د زهد ډېوې بلې ساته!
له تیاره زړو څخه مؤمنه ایمان تېښته کوي

له مجازي فاني ښکلا څخه بېزاره خلک
په حقیقت کي د الله له نېران تېښته کوي

چې ډول، سرنا، سندري، غلا او رشوت نه چلېږي
خود به ډمان، منافقان، فاسقان تېښته کوي

د زماني سترو فتنو یې دی ایمان ګواښلی
غره کي ایمان ساتي له ښاره څاروان تېښته کوي

### غزل

محمد جانان

که ژوندی دی که دا وخت دی ستر نعمت د الله
بس قیمتي یې کړه تر مرګه دا فرصت د الله

قبر ته نه در سره ځي مال هم دولت او مقام
خالص په کار ده نېک عمل ورځ په قیامت د الله

زړګیه! ځان په کښي له هر رنګه خیانته ساته!
در سره څواک منصب او واک لوی امانت د الله

که سعادت د دنیوي او اخروي ژندګۍ
غواړې کوه تل عبادت هم اطاعت د الله

چې تل کامیاب دی مسلمان د دین دفاع لاره کي
په بدرګه ور سره مل وي تل نصرت د الله

"محمد جانانه!" په څو ماتو او په خوارو شعرو
تر خپله وس کاغذ رنګین کړه په صفت د الله

### غزل

احمد "بریالی"

پر قدیمي رسمونو خلک کړي قانون پیدا
چې پر اخلاقو د زلمیو کړي بدلون پیدا

د زماني په تېرېدو یې کړي بدکاره ځکه
پر سالم فکر د زلمو کړي بد جنون پیدا

د بزرګۍ دعوه لري په خالي سر کي مګر
دغه سړي د زماني کړي ټول افیون پیدا

په سرګردانه مرض وبایلي باور پر خلکو
د پښېمانۍ خاپونه راسي پر ناخون پیدا

د سکونت مېنه خالي کړي دایمي په جبر
تر دغه نوي پر جهان نه وي ازمون پیدا

د نشې لویه قصه ګرمه کړي په خپل ګرَمه
وسړو ټولو ته دایم غواړي مضمون پیدا

چې د نشې خیري پرې ومینځي هغه وګړي
د خیر خلکو کړی نه وي یو صابون پیدا

د مرګي رنځ یې رواج کړی "بریالی احمده!"
د غم وګړي ټول زمان نه کړي ممنون پیدا

Tolo E Afghan Journal

طلوع افغان مدیریت له ټاکلي لیکنیز معیار سره سم، دلیکنو په اصلاح کې د لاسوهني حق لري.

ګرانو لوستونکو! په ډېر احترام هیله کېږي، چې دا سپېڅلې پاڼې بې ځایه و نه غورځوئ!

د ګڼون کوونکو له پاره خبرتیا!

د طلوع افغان تاریخي خپرونه چې د هیواد په مطبوعاتي تاریخ کې ځانګړی ځای لري. که غواړئ چې د لمړیز کال په آخرکې د طلوع افغان تاریخي ورځپاڼې یو بشپړ کلکسیون ولرئ، نو په طلوع افغان ورځپاڼه کې ګډون وکړئ.

د ګډون کلنی بیه ۵۰۰- پنځه سوه افغانۍ، زده کوونکو او محصلینو ته د تصدیق په وړاندې کولو سره نیمه بیه ټاکل سوې ده. اداره

مسئول مدیر: بریالی "فیضي"

د تصحیح مسئول: حاجي عبدالله "ذاکري"

کمپوز او ډیزاین: نصیر احمد "صابر"

د مدیریت شمېره: ۰۷۰۵۶۰۸۶۷۳

د توزیع مدیریت شمېره: ۰۷۰۰۴۹۱۴۳۶

پته: علامه حبیبي واټ – اطلاعات او فرهنګ ریاست

د برېښنالیک پته: Afghan.tolo@yahoo.com

Founded in 1921 — ISSue: 70 — Established in 1300 Hijri


# اعلانونه او خبرتیاوي

## زیاتوونکي غواړي

دارغنداب ښاروالۍ ملکیت، د سرکاري باغ د حیواناتو ګنج، د یو کال له پاره په اجاره محمد کبیر د محمد ظاهر زوی په لومړۍ داوطلبي کې په مبلغ ۱۳۱۰۳۰۰/۰ – یو میلیون درې سوه لس زره درې سوه افغانۍ غوښتونکی سوی دی. هرڅوک چې یې تر دې په لوړ قیمت غوښتونکي وي، د مزایدې په دوهمه داوطلبي کې دې خپل غوښتنلیکونه د روان ۱۴۰۳ کال د سلواغې میاشتي د ۲۴ نېټې څخه بیا د همدې میاشتي تر دېرشمي نېټې پورې د ارغنداب ښاروالۍ ته وسپاري. شرطپاڼه کتلای سي، تضمین لس فیصده نغداً اخیستل کېږي او د داوطلبۍ مجلس د روان کال د کب میاشتي پر لومړۍ نېټه، د چهار شنبې په ورځ، لس بجې، په ارغنداب ښاروالۍ کې تر سره کېږي.

## ډېروونکي غواړي

دارغنداب ښاروالۍ ملکیت، د بابا صاحب زیارت لاندې پاکرینګ د یو کال له پاره په اجاره قدرت الله د شېر محمد زوی په لومړۍ داوطلبي کې په مبلغ ۱۴۰۰۰۰/۰ – یو سل څلوېښت زره افغانۍ غوښتونکی سوی دی. هرڅوک چې یې تر دې په لوړ قیمت غوښتونکي وي، د مزایدې په دوهمه داوطلبي کې دې خپل غوښتنلیکونه د روان ۱۴۰۳ کال د سلواغې میاشتي د ۲۴ نېټې څخه بیا د همدې میاشتي تر دېرشمي نېټې پورې دارغنداب ښاروالۍ ته وسپاري. شرطپاڼه کتلای سي، تضمین لس فیصده نغداً اخیستل کېږي او د داوطلبۍ مجلس د روان کال د کب میاشتي پر لومړۍ نېټه، د چهار شنبې په ورځ، لس بجې، په ارغنداب ښاروالۍ کې تر سره کېږي.

## دورکي اعلان

څه وخت وړاندې د عینو مېني د ملکیت یو سند چې د محمد آصف د غلام نبي د زوی په نامه دی، د ملکیت نمبر یې (15)، موقعیت یې (D2-45) او د فایل نمبرونه یې (1861) دي، ورک سوی. هر چا که پیداکړی وي، دافکو کمپنۍ د فروشاتو دفتر ته دې ور وړي او یا دې د ټیلیفون په دې شمېرو تماس ونیسي: 0700305088 -0706033461

## د روح افزا شربت اړوند خبرتیا!

د پاکستان هیواد د همدرد کمپنۍ اصلي روح افزا شربت، په افغانستان کې صرف ګلاب طاهر شرکت ته، دافغانستان اسلامي امارت د تجارت او صنعت محترم وزارت له خوا انحصاري وارداتي جواز نمبر (8548) درلودونکی دی، د ګمرکاتو د ریاست نمبر (4106)، نېټه ۱۴۰۳/۸/۱۲ مکتوب پر اساس دی، ورکړل سوی دی، چې پر هر بوتل باندې د ګلاب طاهر شرکت نوم او آدرس ثبت او لیکل سوی دی.

ګرانو هیوادوالو او پېرېدونکو ته خبر ورکول کېږي چې د تقلبي او غیر صحي روح افزا شربت، د رانیولو او خرڅولو څخه دې ډډه وکړي.

کوم کسان چې تقلبي او غیر صحي روح افزا واردوي او یا په بازار کې خرڅوي، له هغوی سره قانوني چلند کېږي.

ټول محترم هیوادوال دې خبر وي!

یادونه: په کندهار ولایت کې د 2025/12/31 تاریخ پورې زموږ رسمي نمایندګي "نور کاکړ شرکت" دی.




**(۱) مخ پاته: عالیقدر امیرالمؤمنین حفظه...**

اوس ستاسو وار دی، چې د خپل علم او پوهې په مټ، افغانستان په نړۍ کې سیال کړئ او دومره زحمت وګالی، چې بهرنیان دلته راسي، ستاسو څخه زده کړه وکړي او د خپل علم په مرسته پر نړۍ حکمراني وکړئ.

عالیقدر امیرالمؤمنین حفظه الله په خپلو خبرو کې وویل، افغانستان د ټولو ګډ کور دی او هر یو د تاسو څخه په دې نظام کې ځانګړی ځای لري.

هغه همدا شان وویل، افغانستان اسلامي امارت تاسو ته د خیر اراده لري، مدرسه او پوهنتون سره یو دي او د دواړو علمي ادارو ساتنه او حمایه پر موږ لازمه ده، د افغانستان اسلامي امارت د علم پرمختګ له پاره ټولې اسانتیاوې برابرې کړې او موږ د لوړو زده کړو وزارت ته ویلي: که په هر قیمت بهرني استاد دلته راځي او د افغانستان په پوهنتونو کې استادي کوي، ور یې کړئ، خو د هیواد ځوانان په مسلکي ډول وروزئ.

**(۱) مخ پاته: دسلواغې ۲۶مه: د...**

د پخواني شوروي اتحاد په وړاندې د ټولو افغانانو او مسلمانانو جهاد، مبارزې، قرباني، هجرتونه او تکلیفونه د دې سبب سول چې الله تعالی افغانانو ته داویاړ را وبخښي چې د وخت شوروي اتحاد غوندې ستر قوت مات او له خپلې خاورې یې ایستلو ته اړ باسي.

دا چې په تېرو سلو کلونو کې درېیم وار هم افغانستان نوی له اشغاله د الله جل جلاله په نصرت سره آزاد سوی، څرګندوي چې په افغانانو کې د استقلال غوښتني حس لاهم قوي دی او زموږ مسلمانان د خپل دین د ساتني له پاره کلک هوډ او تعهد لري.

د تېرو څه باندې سلو کلونو له پرله پسې یرغلونو او په مقابل کې یې د جهاد له کامیابۍ باید په راتلونکي کې متجاوز جهتونه عبرت واخلي او د بیا ځل له پاره زموږ د آزادۍ او حریت پر ضد ګام پورته نه کړي.

د افغانستان مسلمان او غیور خلک باید د تېر په څېر، په راتلونکي کې هم د هر ډول توطئو او دسیسو په وړاندې بیدار و اوسي او د خپل کلک عزم او اسلامي وحدت په ساتلو سره، د خپلو اسلافو لار تعقیب، خپل دین، عقیده او خپلواکي وساتي.

**(۱) مخ پاته: دکېوالو ښارګوټي...**

آژانس ته ویلي، په دامان ولسوالۍ کې، د کډوالو ښارګوټي، د دوهم فاز، خط اندازي چارې ۵۰سلنه بشپړې سوې او دي.

د یاد ښارګوټي دوهم فاز پر ۳۵۰ نمرو وېشل سوی، چې په کښې ۱۷۵ نمرې ۱۵ بسوې، ۸۸ نمرې ۱۰ بسوې او ۸۷ نمرې پنځه بسوې ټاکل سوي، چې د کډوالو کورنیو ته په کتو سره وېشل کېږي.

همدارنګه په یاد ښارګوټي کې امنیتي، اداري او خدماتي ساحې او سړکونه په منظم ډول سره پلان سوي، چې تر دا مهاله د ښارګوټي په ختیځه برخه کې ۲۵ متره، ۲۰ متره او ۱۵ متره سړکونه په نښه سوي دي.

**(۱) مخ پاته: د"ځوانانو مسؤلیتونه"...**

هر اړخیز معلومات وړاندې کړل.

د ځوانانو چارو آمریت مسئولینو ویلي، ځوان د ټولني د ملا تیر حیثیت لري، نو ځکه ډېره اړینه ده، چې د ځوانانو په روزنه او د دوی د ستونزو د حل په برخه کې ډېر کار وسي.

**(۱) مخ پاته: داویو بند جوړاو...**

د کرهنې، اوبو لګولو او مالدارۍ ریاست ویاند محمد حنیف حقمل ویلي، یاد چیک ډیم ۸۷ متره اوږدوالی، څلور متره پراخوالی او اووه متره لوړوالی لري، چې په اساسي ډول جوړ او ګټې اخیستني ته وسپارل سو.

د دې چیک ډیم جوړولو موخه د باراني اوبو راټولول او تر ځمکې لاندې اوبو د سطحې لوړول دي، چې له امله به یې ګڼ شمېر بزګران او مالداران ګټه ورڅخه واخلي.

د بل خبر له مخې د کندهار ښار، په ۱۲ ناحیه کې، د ۴۸۱ متره په اوږدوالي سره، چړی په اساسي ډول رغېږي.

د کندهار ښاروالۍ مطبوعاتي مسئول سیف الله عاصم ویلي، د چهارشنبې په ورځ د ښار په ۱۲ ناحیه، درېیم ګذر کې د ۴۸۱ متره په اوږدوالۍ سره د چړیو اساسي جوړولو چارې پیل سوي دي.

یاده پروژه د کندهار ښاروالۍ په انکشافي بودجه تطبیقېږي، چې په ورځني ډول به په کښې ۳۰ کسانو ته کاري زمینه برابره سي او رغنیزې چارې به یې په راتلونکو درو میاشتو کې بشپړې سي.

**(۱) مخ پاته: ۱۳ مهاجرې کورنۍ...**

د ثبت او تثبیت کمېټې مسئولینو باختر خبري آژانس ته ویلي، د سه شنبې په ورځ نهه کورنۍ چې د کسانو شمېر یې ۴۹ تنه او درې تنه په کښې بندیان ول، خپل هیواد ته راستانه سوي دي.

له یادو کورنیو سره د اسلامي امارت اړوندو ادارو له خوا نغدي مرسته سوې او هم مرستندویه مؤسسو ته د مرستې په هدف ورپېژندل سوي دي.

**(۱) مخ پاته: زرونه کېلوګرامه...**

۲۲۳۴ کېلوګرامه اومان، ۷۶۰ کېلوګرامه جامد کېمیاوي مواد، ۹۱۶ لېتره مایع کېمیاوي مواد، ۵۰ ګرامه ښیښه، ۷ ګرامه چرس، ۴ ګرامه هېروئین، ۱۹۱ عدده ټابلیټ کاکولۍ او ۲۰ سېټه موبایلونه شامل دي، چې په تړاو یې ۱۷ تنه شکمن کسان هم نیول سوي دي.

همدارنګه امنیتي ځواکونو د نشه یي توکو یو شمېر کارخوني هم له منځه وړي، د ښار او ولسوالیو څخه ۹۵ تنه په نشه یي توکو روږد کسان راټول کړي او روغتیایي مرکزونو ته یې معرفي کړي دي.

د بل خبر له مخې د امنیه قوماندانۍ ویاند ملا اسدالله جمشید ویلي، امنیتي ځواکونو یاد نشه یي توکي د ځانګړو عملیاتو په ترڅ کې، د سپین بولدک ولسوالۍ اړوند، د سرو څاهانو په سیمه کې نیولي دي.

په نیول سوو نشه یي توکو کې ۲۱۲۳ کېلوګرامه چرس او ۷۲ کېلوګرامه تریاک شامل دي.

## ټولنیزې رسنۍ

**Abdullah Azzam:**

مخلوق؛ نه ښه او نه بد انسان بې خبرو پرېږدي!

په چا کې چې عیب نه وي، هغه ته یې تراشي او ور پېغوروي یې. ګوري نه چې د لوط علیه السلام قوم د هغه د کورنۍ په اړه څه ویل:

أخرجوا آل لوط من قريتكم انهم أناس يتطهرون.

«لوط (علیه السلام) او د هغه پیروان له خپلو کلیو نه وباسئ هغوی ډېر ځان پاکوونکي خلک دي.»

کومه خطا چې یې پکې ونه مونده نو د پاکۍ پېغور یې ورکړ.

بیا هم خلک تلاش کوي چې انسانان څنګه راضي کړي.

هېڅ لاره یې نشته وروره! ځان مه ستړی کوه.

**صدیق الله "افغان":**

په کندهار کې د لوستو ځوانانو د بې کارۍ څپه ځورونکې ده، خواړتیا نسته ده، چې دوی حکومت ته په تمه سي چې کار به ورته پیدا کړي، دا ځوانان باید خپل د مسلک اړوند، حرکت پیل کړي، کوچني کاروبارونه پیل کړي، ان شاء الله هڅي به یې بې ځایه ولاړې نه سي، لږ دلاوري وکړي، الله جل جلاله مرسته در سره کوي، په ناستي او انتظار مو فکرونه لا خرابېږي، له حرکته لوېږی، رواني ستونزي به مو هر څه در تباه کړي.

**Nisar Samad Wasifi:**

متعادل اوسه!

په نرمښت کې نو هم دومره افراط مه کوه چې وخوړل سې، یعني ځان تر ناکسو خار کړې!

**Dr Aman Shams:**

د انسان ماغزه د نریو یا باریکو پردو په واسطه پوښل سوي دي. د دغو پردو یا پوښ پاړسوب ته مننجایټس ویل کېږي، چې عموماً د مکروبونو په واسطه منځته راځي او د خاصو انټي بیوټیکو په واسطه تداوي کېږي. دغه یوه خطرناکه ناروغي ده چې په بېړه یې باید علاج وسي.

تبه، د سر درد، استفراق، له رڼا کرکه، د څټ شخوالی یې لومړنۍ نښې او نښانې دي. کله چې ناروغي شدیده سي، نو کېدای سي، ناروغ بې هوښه سي، پر پوست یې ټپونه پیدا سي او د مېرګي حمله پرې راسي. دغه ناروغان په بېړه تر روغتونه ورسوئ!